## وطن ته

اې وطنه زما دماشومتـوب
زما د ناپوهۍ او لېونتـوب
زما د بد مستۍ د زلميتوب
زما د بېخوبيو دآ شـــوب
اې وطنه زما !

فکر مې د تا دغرونـو بــا ز
مينه مې دتا د رګـــو ســا ز
شعر مې د تـــا دزړه آواز
ستا دسترې مينې داعجاز
اې وطنه زما !

درد دې دو ګړو زمــا دځا ن
سر مې ستا بې سرو نه قربا ن
مه اوسه بې تا نه زمــا نشا ن
اې سپېڅلې خاورې دافغا ن
اې وطنه زما !

## د پولادو زړه

دا پولاد دی که له غوبنو نه جوړ زړه دی
چې جـ□ کړی يې په ننـ□ پرچم دخلکو
سپېلنی يې دسپرغيو دغيرت شـــــــــم
څوک چې زړه کبابوي په غم دخلکـــو

## وطن ته

ستا په وچو د ښتو غرو کې اې وطنــــــــه
ستا په لارو سړکو کې اې وطنــــــــــه
ستا دهرې لوېشتې ځمکې په سينـــه کې
ستا په ښارو او مېرو کې اې وطنــــــــه
ستا دوربځو او شينکي آسمان په زړه کــې
ستا په وچه او اوبو کې اې وطنــــــــه
په جوما ت کې، په مکتب کې،په د فتر کې
ستا دمړو په هديرو کې اې وطنــــــــه
سرې لمبې او آفتونــه رارواان دي
جابران په دې حدودو حاکمان دي

کابل ۱۰ر۱۰ر۱۳۴۶

## تېر شوی بهار

دځوانۍ پر خمار راغلمه زړښت ته
څو مې ستر گې خلاصولې بها ر تېر و
ترا مې لاس ور غځاوه ديار کاکل ته
د مستۍ د شپو او ورځو کتـــا ر تېر و

کله چې و نړېږي تور قصرونـــــه
کله چې ورپېږي سرې جنــــډې
کله چې غبرګې شي په لوړو برجو
دپوند ه وو د رغلي لمبـــــــــې
کله چې پلنې شي په غرو رغـــونو
دځنځيرو د مـــــــــاتوو ټپې
کله چې و خوځي د سين په زړه کې
مستې، بيبا که ، لپــــــونۍ څپې
کله چې تند ر او برېښناوو ســـــره
سر را اوچت کړي دمظلوم ا سرې
زه به بيا هله ترا نې ليـکم
په خپلو وينو به ټپې ليکم

۲۰ر۷ر۱۳۴۸

پښتون

څه ساده دی دا پښتون چې تــــر بګني کا
زه د زړه وينې پې چښم دی دښـــــمني کا
خلکو لاندې تر پښو ستوري سپوږمۍ کړل
دی لا دوو مېږو ته نا ست دی او شپني کـــا

## د ځوانۍ لمبې

راځه راځه اې مستانه نغمې
دنوي ژوند نېشې
چې ایرې کېږي او سرې پړي دځوانۍ لمبې

زما ترانو ته نوی خوندور که
ابدي ژوندور که
زلمي سپاره ته بل میدان او بل سمندور که

هغه ځواني څه ده چې شور نلري
خاصه داور نلري
دریاب به څه وي که څپه نلري زور نلري

زاړه که وینې پروني خوبونه
خپل لېوني خوبونه
موږ ته را څېرمه کړه دعصر نني خوبونه

زموږ په چیغو کې قوت کېږده
یو څه هیبت کېږده
زموږ په هڅو کې دغرونو عظمت کېږده

راځه راځه اې مستانه نغمې
دنوي ژوند نښې
چې ایرې کېږي او سم ېږي دځوانۍ لمبې

ښرنه ــ پکتیکا ۲۶ ر ۲ ر ۱۳۴۳

ځوان ته

ژوندون یوه لار ده ، هیــــله ډېره ده
توشه درنه ده ، هیلــــه اوږده ده
په هر قدم کې ، په هره لوېشت کې
دنېکو بدو یوه هنــګا مـــــه ده
قدم مضبوط ږده ، وار خـــطا نشې
ستا په آرزو کې د نیا پر تـــــه ده
د ژوند سند ره و دبقا لـــــــوبه
له تا خوره ده ، پر تا تـــــوده ده
ته نوی ځوان یې، ته لوی افغان یې
ته یوه هستي یې، ته یو جهـــان یې

کابل ۵ ر ۶ ر ۱۳۴۸

دسبا هیله

په دې تیــارو کې
په اوږدو شپو کې
په دې غمـــو کې
په اند ېښنـــو کې
زړه ته مې رسي یوه نوې دمه
روښانه ښکاري د سبـــا ښه

غرونه به شنه شي
ګلان به سره شي
خوښي به ویښه
غم به ویده شي
ما ته را رسي په صبحدم کې
نغمه دوصل په زیروبم کې

شفق سور کېږي
سبا را خېژي
رڼا خورېږي
تیاره کمېږي
له غرو را غبرګه نوې نغمه ده
زښته خوشبویه، ډېره خوږه ده

په زوېه زوېه

د وطن زوېه

گوره تن□ نشي

عرصه ده لوېه

لېږ منتظر شه سبا د تا د ه

مخه دې پا که لار دې رڼا د ه

کا بل ۱۷ر۸ر۱۳۵۴

ملگرو ته

اې ملگرو زما دعقیدې

زما دغم په شپو کې ددېرې

زما په ترانو کې د ا مید

خلکو په مرچل کې دجگړې

لاس کې جلبونه دتوفا ن

پښو لاندې اسونه حا دثې

هر قدم خطر دغرقېدو

شا او خوا اورونه دفتنې

هر آواز دتا لندې دمر گ

هره سا سر کشې زلزلې

سر کې یرغلونه د برې

ستر گو کې برېښنا دغلبې

مړه مشرق له شا نه غلې غلې
څوکې راښکارېږي دلمبو
بیا د شپو وهلو غرو په څنډو
سره رڼا خورېږي د سپېدو
ښنو کې دپېړۍ دا سیرانو
بند په بند ځنځیر په متېدو
ورانو دېوالوکې د بزگرو
شور د آزادۍ په خورېدو
شپه دلو تهما رۍ په تېرېدو
لمر دعدالت یه را ختو
اې زما ملگرو دجنگو
زموږ دسرو سرکشو بیرغو
اې راویښوونکو دزنگو
زموږ دزمرو خلکو دننگو
اې را خوځوونکې دڅپو
اې سر ماتوونکو دظلمو
اې لښکره زموږ دار مانو
اې په مخه تلونکو سېلاوو
نشته بله لاره بې له ننگه
نشته بله مخه بې له جنگه

ښرنه پکتیکا ۷ر۴ر۱۳۴۸

سرې وریځې

بیا دغرو له څوکو څوکو
سرې وریځې را ښکارېږي
دافق توره پټاره
په سکروټو جړاوېږي
نن دځمکې له ګرمۍ نه
دآسمان بڼه بدلېږي
دا دچا دوینو رن□ دی « دآسمان لمنې سرې دي»
دا دچا دزړه له اوره په وریځو کې لمبې دي

دتیاره ماښام په زړه کې
دسحر نښې ځلېږي
د سبا زرینې وړانګې
را خورېږي، را رسېږي
دجهان دا ضرورت دی
سره رڼا به پې خورېږي
دغه ښکلي مرغلرې شعر ندی انقلاب دی
دسبا له سره آسمانه را بېل شوی یو شهاب دی

سرې وریځې سېلاوونه
په درو کې را بهېږي
دا تیارې ځپلي غرونه
سرو موجونو کې ډوبېږي

تور رنګونه را تمبېږي
د ژورو په خوا لوېږي
اې دسرو لمبو زمنو! ګړندي شئ چې زړېږم
زه دتورو شپو اسیر یم لاس مې نیسئ چې ډوبېږم

یا به موږ یو یابه نه یو
دا جونګړه به رڼا شي
دا دشپې غارتګران به
ټولو خلکو ته رسوا شي
دا دغم توره دنیا به
ډوبه ډوبه په خندا شي
دهغه وخت نیک بختا نو هېر مونشي دا جنګونه
ددې تورې شپې په زړه کې دلارویو سره ننګونه

پلخمري ۲ر۲ر۱۳۴۷

دآسمان بدل رن□

بیا بدل دی په دې سیمه دآسمان رن□
دتاریخ دغور ځنګونو دامکان رن□
زموږ هیواد عبرتکد ه دټول عالم شو
ځناورو ته اوښتی دانسا ن رن□

## دا به څوک وي

ننه په سينه کې مې څوک ساز کوي
شور کوي، مستي کوي، آواز کوي
مېړي مونږ ته د دوستۍ پيـــام
ليکي زما په وينو د راستۍ پيـــام
گواکې د انسان دآزا دۍ پيـــام
گوره دا به څوک وي ؟

کله چې تيارو کې زه بې ځانه شم
وډار شم له چانه بې ايمانه شـــم
ولگوي دی دفضيلت څـــــــراغ
رونې کې زما رگونه دغيرت څراغ
تل دې وي ژوندی دادعزت څراغ
گوره دا به څوک وي ؟

کله کله غواړم چې سر کته کړم
خرشمه دچا او ځان په کته کــړم
دی بيا را بيدار شي او مستي کوي
ما را گرزوي زبر د ستي کـــوي
نه دچا خر کېږي نه پستي کـوي
گوره دا به څوک وي ؟

کابل ۱ر۳ر۱۳۴۳

یادونه او درمندونه

بیا په غنمو لوونه ګډ شول
بیا درمندوته ګېډۍ چلېږي
بیا نجونه راغلې دوږیو ټول ته
بیا دسره دوبي لمبې بلېږي
بیا هغه لو دی، هغه لرونه
یواځې لښته نه معلومېږي

یه لښتې لښتې ، دکلیو حورې
داچې تنها یم څه دې یادېږم ؟
زه چې ګېډۍ ته لاس غځومه
ته راپه یاد شې نو بیا ژړېـــږم
نه لو کې خوند شته،نه په لاره کې
له ناچاریه یو څه خوځېږم
کله زنګېږم، کله ړنګېږم
کله درېږم ، کله غورځېږم
هر څه چې یمه ، هر څه چې کړمه
اې زما لښتې
تا یادومه

بیا درمندوته خانان راغلي
په لوو ګرزي زموږه ځار کړي
په مستو مستو اسونو راشي

چې بدګمان شي ستړی شمار کړي
هغه زلمی بیا راپید شوی
چې په هر لوی او واړه ګوزار کړي
تر خپلو سپینو ستر ګو د لاندې
نجونو ته ګورې چې کومه ښکار کړي
مګر اې لښتې
هر څه چې یمه، هر څه چې کړمه
تا یادومه

ګرمي سوځلی زما پوستکی
له هر وېښته مې خولې بهیږي
لور مې پ□ شوی،لاس مې زخمي دی
سر مې چکر خوري، ملا مې خوږېږي
نه مې همدرد شته، نه مې ملګری
نه مې څوک نازي ، نه را جارېږي
ورځ خو لا ښه وي چې پېټي وړمه
توبه له شپې شه سخته تېرېږي
مګر ا ې لښتې
هر څه چې یمه، هر څه چې کړمه
تا یادومه

افسوس ا فسوس دی لا رمې اوږده ده
د تا لیدو ته، ستا بوییدو ته
د ژوند سیندونه، دژوند غمونه

مخ کې پراته دي در رسيدو ته
هر کښت چې رېبم، هربار چې وړمه
غوا يي چې با سم قلبه کوو ته
هر څه کړمه، هر څه چې يمه
اې زما لښتې تا يادومه !

بالا دوري ـ پلخمري ٦ر٤ر١٣٤٢

سیلاني بزګر

بې پروا راغی ساده بزګر دی
پښې یې چاودي ګرېوان شکېدلی
مخ یې شو کارې، شونډې یې وچې
لوږې اخیستی، ګرمي وهلی
سر ببر شوی، نوکا ن ما ت شوي
پا یڅې شکېدلې، خیرو خوړلی
چا وېرولی، چا ځورولی
چا رټولی ، چا غولولی
سا ده بزګر دی، دچا نوکر دی
جشن به ګوري
او بیا به درومي

کله په شا ځي ، کله په مخ ځي
کله را ستون شي، کله روان شي
کله موسکی شي، لېږ خند نی شي
کله نا څاپه له خندي وران شي
ښار ته راغلی له لري سیمو
هر شي ته ګوري ورته حیران شي
چا ټېل وهلی، چا پر زولی
چا را شړلی، چا شرمولی
سا ده بزګر دی، دچا نوکر دی
جشن به ګوري

او بيا به درومي

خلكو ته گوري ښه لبا سونه
تور پتلونونه ، سپين كميسونه
په پښو بوټونه ، په تن كوټونه
سره يې مخونه ، سپين يې لاسونه
څوك له مېرمنو ، څوك له زمنو
جوړه جوړه ځي زلمي او جونه
د ده په زړه كې خوځي موجونه
تش ارمانونه ، وچ هوسونه
سا ده بزگر دى، د چا نوكر دى
جشن به گوري
او بيا به درومي

خدازده چې شپه به چېرې سبا كړي
خدازده چې نس به چېرې بسيا كړي
څوك پسې گرزي ، څوك يې پروا كړي
كه خوار رنځورشي ، را پې ضرور شي
څوك يې دارو كړي، څوك يې دوا كړي
له غرو را غلى ځا له يې نشته
بې شپو نه ورى دى تا له يې نشته
سا ده بزگر دى، دچا نوكر دى
جشن به گوري
او بيا به درومي

پلاریې مړ شوی دوطن جن□ کې
دی یتیم شوی، بیا دهقان شوی
اوس چې جشنونه دخپلواکۍ دي
چا ورته وېلي را روان شوی
په لري لارو ، په شپو او ورځو
ښار ته راغلی او ستومان شوی
بې پناه شوی، بې امان شوی
جېب یې خالي دی پښیمان شوی
ساده بزگر دی، دچا نوکر دی
جشن به گوري
او بیا به درومي

کابل ۱ر٦ر۱۳۴۴

تا یا دومه

لا مې یا دېږي په دې بېدیا کې
وښان خواره شوو، کېږدۍ شوې پلنې
لا مې یادېږي په دې ورشو کې
ستا مرغلرې او ښکې ویرجنې

اوس را روان دي ساړه بادونه
دمني غېشي، دیخ پوځونه
باران ځپلي، سېلۍ وران کړي
دشګو پاسه زموږ پلونه
بیدیا بې ژونده، ژوندون بې خونده
یخنۍ لوټ کړي ددښت ګلونه
ستاسي رغلو کې او به ډنډ شوې
نه یې ایرې شته، نه یې اورونه
زه ویر ځپلی، غمو نتلی
یوائحي نا ست یم تا یادومه

بر بنډې شوې د بوټو څانګې
د بېوزلانو په څېر رېږي
په شنه آسمان کې تورې وریځې
په مارا ګرزي ورو ورو ژړېږي
د لري سیمو دغرونو څوکې
په لړو پټې نه معلومېږي

مغرب په وینو دغروب سوردی
مشرق تیاره کې دغم ډوبیږي
چوپیا خوره ده په ټوله سیمه
نه څوک خوځېږي نه څوک ګړېږي
زه ویر ځپلی، غمو نتلی
یوائحې ناست یم تا یادومه

د کاروان لار کې ابته ناست یم
ستاسي د کډو لاره څارمه
خوشې دې ګالم انتظارونه
څه وکم یاره، ځان غولومه
هسې د کډو په هیله هیله
وخت تېرومه، ځان هېرومه
په دغه چوپه سړه بېد یا کې
د مینې دروی ورو غږومه
زه ویر ځپلی، غمو نتلی
یوائحې ناست یم تا یادومه

مګر اې ښکلې پوونده پیغلې
هرڅه چې شته وو خزان لوټ کړي
د باد څپېړو، د منې غبشو
د ژوندن ځلي په مخه وړي
خو زما په زړه کې لاپسې ځغلي
د ستا د مینې ابدي زړي

زه وير ځپلی ، غمو نتلی
يوا ځي نا ست يم ما يادو مه

کا بل ۱۷ر۸ر۱۳۴۴

راځه سارا ته ووزو

بيگا مې زړه ته وويل را ځه سا را ته ووزو
و يرېږم چې را غلی پسر لی به ورو ستنی وي
راځه له امانته عمره واخلو خپله بر خه
په عمر څه باور چې هره سا به غوښتنی وي
ددې تږليو خونو په فريا د مې تسل نشي
سارا به څه خبرېږي چې مجنون يې کورنی وي
باران ته به دبلو لمبو زړه کېږدو په پښو کې
په اوښکو نه تېږېږي هغه اور چې لمبونی وي
سپاره به کو په تا لندو گون□ سوي فريا دو نه
په چوپه نه رغېږي هغه درد چې مر گنی وي

کا بل ۱۳ر ۷ ر ۱۳۵۵

## يتيم

په ساړه باد کې د مني يخ ته
په لوبو بوخت، په منډو سر دی
گریوا ن شکېدلی، پښې يې چاودي
ستر گې لیچنې، سر يې ببر دی
ښکلی ما شوم دی، تقدیر يې شوم دی
په پردي وره کې بې پلا ره ستر دی
دا جها ن وران دی
دا جها ن وران دی
یوه ته جنت دی، بل ته زندا ن دی

د باد څپېړو په مخ شین کړی
ټو لو همځولو یو ځل وهلی
پوزه يې ما ته ، غوږ يې شو کارې
لاس وينې شوی، سر لگېد لی
چا پې خندلي، چا پې تو کړي
یوه رانیو لی، بل څملولی
دا جها ن وران دی
دا جها ن وران دی
یو ه ته جنت دی ، بل ته زندا ن دی

مور يې له غمه عقل با يللی

په پردي کار کې صورت خوړلی
ژوند يې تياره دی، اميد يې نشته
د لارې مل يې مرګي بيولی
يوا ځي پاتې اوږدو غمو ته
وړه يې مات شوی ، شبا ب يې تللی
دا جهان وران دی
دا جهان وران دی
يوه ته جنت دی، بل ته زندان دی

پلار يې مړ شوی اوږدو رنځو کې
په ساړه رغولي ، په تورو شپو کې
د په وېره او اند ښېنو کې
د زوی له غمه په ژړېدو کې
بيا يې با يللي ټول ارمانونه
په څو ځګېر وو کې، په اوسېلو کې
دا جهان وران دی
دا جهان وران دی
يوه ته جنت دی، بل ته زندان دی

ور ځه ور درومه دزړګي سره
په پښو بر بنډ ه ، په سر ببره
انسان رنځور دی، اخته په چور دی
هيله ونکړې له دې بشره
په خپلو پښو شه ، په خو ځېدو شه

همدا دې لار ده زما ځيگره
دا جهان وران دی
دا جهان وران دی
يوه ته جنت دی، بل ته زندان دی

ټول سره يو شئ، ټول سره يو شئ
که يتيمان يا ست، که يسيران يا ست
تقدير مو يو دی، دښمن مو يو دی
که اوښبانه يا ست، که بزگران يا ست
خښتې يې باسئ، لرگي يې سوځئ
که نوکران يا ست، که چاکران يا ست
دا جهان وران دی
دا جهان وران دی
يوه ته جنت دی، بل ته زندان دی !

پروان مېنه ـ کابل ـ ۸ر۸ر۱۳۴۴

د مينې برخه

بوراسته شو د گلابو په اغزيـــــــــو
چې دعشق نازونه وړي دغه به گالي
چا چې سر او مال قربان که له وطنه
پې دوزخ شول دوطن ښکلي ورغالي

د پکتيا غرونه

دا غرونه ، دا ج□ غرونه، دا لوړ او دا رسا غرونه
دا د توريا ليو د سنگرو د وفا غرونه
دغه تاو راتاو په ونو پټ دپکتيا غرونه
دا ديرغلگرو ماتوونکي بې همتا غرونه
دا د شجاعت او دمېړانې او رښتيا غرونه
دا دمېلمه پالو دننگونو او سخا غرونه
دا داستقلال او آزادۍ او دبقا غرونه
دا دپکتيا غرونه
دا د پکتيا غرونه

دلته زموږ خلکو د دښمن ژامې ځپلې دي
دلته مېړنيو خپلې وينې بهولې دي
دلته شازلميانو دزمرو لارې نيولې دي
دلته په فرن□ باندې موږ ميندې ژړولې دي
دلته زموږ نيکونو زلزلې را پارولې دي
دلته دجنگي ا سونو تلې پريوتلې دي
دا دپکتيا غرونه
دا دپکتيا غرونه

دلته په کلو کلو پراته زموږ نيکونه وو
دلته د سرتېرو شازلميانو سنگرونه وو

د غلته پښتو وه، پښتنواله وه، ننګونـــه وو
دلته هدیرې ، دلته نغرې، دلته دودونه وو
مینه وه، وروري وه، ملاتړ و ، غیرتونه وو
دلته له تېرې سره ټکرې وې ، جنګونه وو
پېچ د هر کنډو یې تند رونه او مرګونه وو
دا د پکتیا غرونه
دا د پکتیا غرونه

اوس زموږ په برخه د زاړه نظام ظلمونـــه دي
لوږه، ناپوهي ده، بې وسي او مرضونـــه دي
توره تربګني ده او له ورور سره جنګونــه دي
جوړ راکې دسپین او تور اوهرنامه ګوندونـه دي
کلې لېږدول دي ، سوځول دي او مرګونه دي
بې له کوم هدفه د اوږدو لارو مزلـــونه دي
یا په دروازه دیوه د نې کې خدمتونـــــه دي
ځکه په شرمونو شرمېدلي زموږ غرونـــه دي
دا د پکتیا غرونه
دا د پکتیا غرونه

موږه ظالمانو څه بې ځایه ننګـولي یـــو
موږ یې په وطن کې له خپل وروره جنګولي یو
موږ یې هر آفت، هرې بلاته ټېل وهـــلي یو
وروسته له غرضه یې په شاباندې شړلي یـــو
بیا یې ورږي کړي، بربنډ کړي او وژلي یـــو

یا یې د سپېتا نې دروازو کې درولي یــــــو
موږ یې دنفاق او ځا ن ځا نۍ په تا ر تړلي یو
موږ یې دوطن دې جگو غرو ته شرمولي یـو
دا د پکتیا غرو نه
دا دپکتیا غرو نه

سپک کړل ظالمانو زموږ سیمه او انســــا ن
موږ یې له رڼا تېپې تیارې ته کــــــړو روا ن
موږ څخه یې ورک که دمردۍ نوم او نشا ن
زموږ له لاسه پرېوتلې ملـــونـــــه دزمان
ښکلې پکتیا ته یې را ننه که شیــــــطا ن
موږه یې بد نام کړو پر گنوته دا فغــــــا ن
را شي گوندې وخت بیا دننگونو یو زما ن
هله به موږ ورکړو خپل وطن ته امتحـــا ن
رسي زموږ غرو ته اوس بادونه دجهـــا ن
دا د پکتیا غرو نه
دا دپکتیا غرو نه

را به سېلاوونه شي، برېښناوې به جل بلې شي
پورته به بادونه شي ، ژلۍ به تلې ولې شــــي
هیلې دغریبو او مظلومو به منـــــــلې شي
دا غټې کپرې دخون خوارو به ځــــپلې شي
غوځ به شي سرونه او ډېرې وینې به تلــې شي
لوړه به رڼا شي ، ددې غرو څوکې به بلې شــي

دا دپکتیا غرو نه
دا دپکتیا غرو نه

څرېکې دغیرت به را پیدا شي په سرونو کې
جگه به ناره دانقلاب شي په په کامونـو کې
نوی زور به واخلي اتڼونه په ډولونــــو کې
زموږه سړه وینه به توده شي په رگونــــو کې
مینه دانسان به راژوندۍ شي باده زړونو کې
روح دآزادۍ به رادننه شي په غرونــــو کې
دا دپکتیا غرو نه
دا دپکتیا غرو نه

کابل ۳ر۲ر ۱۳۴۹

## جاپانۍ نجلۍ

په مخه راغله جاپانۍ جلۍ
سپینه هیلۍ نجلۍ
دودرېده مسته

ما سلام ورکه په خندا شوه نجلۍ
په کټه ها شوه نجلۍ
ما ته شوه شاته

په تبسم یې راته وویل «کوني چیوا» ۱
«دوزو یورو شیکو» ۲
له خندي ورانه شوه

ما ورته وې په رب که پېږم نجلۍ
بد مرغه کېږم نجلۍ
په ځان پوهېږم

د پښو په څوکو شوه رهي هوسۍ
د جزیرو هیلۍ
زه شومه پاتي

دمخ په لمر يې وربځې راغلې د غم
سترګې د رياب شوې دنم
له زړا ورانه شوه

ماويل پوه شوم ليږ ستنه شه نجلۍ
اې زما ښکلې شهۍ
دې ويل «اي اي اي»

توکيو ۲۰ر۸ر۱۹٦۳

( ۱ ) شپه په خير
( ۲ ) دمهربانۍ له مخې پام لرنه وکړئ
( ۳ ) نه، نه، نه

د بس خاطره

راسره مل شوه په يوه بس کې
يوه مسته پېغله تر واورو سپينه
لاندې له سترګو يې پټ څارلم
راته کتل يې په مينه مينه
زړه يې غوښتلې ما خبرې
دلرې سيمو څو مرغلرې
بس چې خالي شو نو رانيږدې شوه
په سوې سايې وکړه پوښتنه
دکوم ځای ګل يې، دکوم دطن يې

ځنګه را غلی تر دې وطنه ؟

وې مې ځو شپې یم ستا سو وطن کې
یوه اونۍ وروسته بیا په پرواز یم
وزر مې سوځي ، قرار مې نشته
مر غه دلوړو و دغرونو با ز یم
زړه مې ور کاږي دوطن غرونه
سر کش سیندونه ، بېباک چړونه

ورو په مسکا شوه ویل یې وایه
خوښې دې نشوې هنکا نګې نجونه
په هرقد م کې ، په هره لوښت کې
لکه ګلونه ، شیندي عطرونه
ځنګه یې وایه پنهان رازونه
لا دې ترلي دزړګي ورونه ؟

ماوې افسوس دی ګلې چې نه یم
نه د سیلونو، نه دعشقونو
کله چې برخې وېشل کېدلې
ماته یې راکړل واړه غمونه
زه مبارز یم ، زه .مجنون نه یم
د چا په زلفو کې زبون نه یم

۱۹۶۳ر۹ر۲۰

ملگرو ته

اې زما ملگرو دتوفان دسختو شپو
اې په دغو شپو کې لاربنوونکو دڅپو
دغه څپې څه دي؟ دسبا دانقلاب څپې
دغه توفان څه دی؟د اولس دپر گنو
دا دزيار ايستونكو، دبزگرو، كاريگرو
دغه د سر كشو ، بت شكنو ككرو
دغه څپې څه دي د وطن دفكر لاره
دغه توفان څه دی رو غ عمل دجنگېدو
كندو گړنگونو كې د لارې د يستو
فن دبرېدو، هنر مندي درسېد و

دغه څپې څه دي ؟ دا دخلكو نهضتونه دي
چيغې دي ، نارې دي ، زولنې دي او بندونه دي
منلې دي، لوېد ه دي، پرمختا□ دی، سترې ماتې دي
شور دی دخنداوو يا داوښكو بارانونه دي
يا يوه خندا ده دكامگارو دخنجر دنېښ
يا ديوه ولس د زړه سر كښه فريادونه دي
كله دزاړه نظام دژوند ورو ستنۍ هڅې دي
كله دمات شوي قهرمان دزړه ټپونه دي
خامخا راتلونكې دسرو وينو سېلاوونه دي
ديو داستبدا د سره دخلكو حسابونه دي
ځم به په دې لاره كه مې ت□ شي په لېمو

اې زما ملګرو  دتوفان دسختو شپو
اې په دغو شپو کې لار ښوونکو دڅپو

څه دی ، توفان څه دی ؟ انقلاب د پر ګنو
موږ به دڅپو مخه توفا ن ته سموو
موږ به خپل آسمان په سرو وریځو پوښوو
موږ به له آسمانه تندرونه اوروو
موږ به له غوصې نه ډک بادونه خوځوو
لاره دنجات به په تو فا ن کې لټوو
دیو دا ستعما ر او ا ستبد اد به ا یلوو
وري به په رمه کې له لېوانو خلا صوو
ای دانقلاب جنګي ګاډی باندې سپرو
اې زما ملګرو دتوفا ن د سختو شپو
اې په دغو شیو کې لار ښوونکو د څپو

نن په نړۍ خور دی دلنین د بري لمر
شور دی دځنځیر د ماتوونکي اکتوبر
اېشي په آمو کې دبزګر دلړمون وینه
سرې وړانګې خورېږي پاس په څوکو دخیبر
ځالو کې نور نه کېږي ټاټوبی د بازانو
سوځي الوتو ته دجنګي مارغه وزر
هر آواز چې وزي د زیار کښو له کوګله
نیسي له د ښمنه دجګړې نوی سنګر
مه سپموئ خلکو له جګړې نه جنګي سر

ستاسو سره مل دی که بری دی که ظفر
تل دې وي ژوندی د زيار ايستونکو دغه لمر
تلين دانقلاب ، ځلانده ورځ د اکتوبر
اې په سرو لمبو کې استادانو د لامبو
اې زما ملګرو دتوفان د سسختو شپـــو
اې په دغو شپو کې لار ښوونکو د څپو

يو کئ خپل توفان د درست جهان له توفانو سره
يو کئ خپل سنګر له ويتناميانو مېړنو سره
لوړه سره جنډه دآزادۍ کئ په زيار کښو کې
ګډه باندې ما ت کئ ځنځيرونه له کانګو سره
يو کاندئ آواز دانقلاب په ټوله وچه کې
سپينو او له زېړو او له تورو پرګنو سره
سپل د آزادۍ شيه او يو شئ له سپلو سره
يوه کاندئ جبهه دکروندو له کارخانو سره
هره لويشت سنګر دی اوچت غرونه له درو سره
ولړزوئ کلي او کورونه له ښارو ســــــره
اې جنګي لښکره دزيار کښو دا سرو
اې زما ملګرو د توفان د سختو شپـــــــو
اې په دغو شپو کې لار ښوونکو د څپـــــو

کابل ۱۳ر۸ر۱۳۴٦

غر   ونړېده

مړ شو قهرمان له خپلو تړيو ارما نو  ســــــــــره
ونړېد ه غر له خپلو پټو  زلزلو   ســـــــــــره ؛
دا سې زلزلې چې پلنېدی پرا خېدی نشــــــــوې
ځمکه بې احسا سه وه  د با ندې را وتی نشـــوې
دپ وو ټول غوړ.ونه دچا غوړ. ته رسېد ی نشـــوې
لرې وه د نيا لويي د نيا ته غځېد ی نشــــــــوې
تنګه وه فضا پخپل محيط کې خوځېدی نشـــوې
بل ترې لا ند ې اور و تمېدی غلې کېد ی نشـــوې
وې چاود ه کو ګل پخپل ضمير کې يې مستي و کړه
سر يې ترېنه وا خيست ا وسېلو زبر دستي و کـــړه

ودرېد هغه زړه چې ستر يې هيلې ا رما نـــــــونه وو
ستره يې دعوه وه بې پا يا نه يې مزلـــــــــــونه  وو
مل يې له هر ټوپ سره دسرو وينو مو جـــــــونه وو
مخ ته يې هر ګا م سره کوهي وو  ګړنګونــــــــه وو
تا و ترېنه دلو نړۍ دردونه عذا بونــــــــــــه   وو
کور يې درست جها ن و، انسانا ن يې وا ړه ورونه وو
ټپ شو   دوطن په ترږمو کې  دخيبر  څـــــــــراغ
ما ت  شو دتيا رې د ير غملو دسحر  څـــــــــراغ

څو چې يو زلمی وي  ستا په پلونو به پلـــــونه ږدي
څو چې يو افغان وي  ستا په قبر به ګلونــــه ږدي

پیغلي د شونډو ستا په شنا ختو سره لا لونه ږدي
موښي به مخونه ستا په پښو به اور بلونه ږدي
څو چې زمان درومي یو پر بل با ندې کلونه ږدي
ستا مجسمه بشپړوي ستا هیکلونه ږدي
اې په ارمان تللیه زموږ ستر او قهرمان وروره
اې زموږ دعقل اوعقیدې او دایمان وروره

ورونه به ژوندی کړي تا دتاله هدفو سره
ستا ساندې به وایي له پښو لوڅو بوټینو سره
ستا له تني ورونو اوښبنو او غوبنو سره
ډ که به دنیا کړي ستا له چیغو او نارو سره
جوړ به ځلاند څلی کړي دتاله ارمانو سره
وبه لړزوي هوارې، غرونه، له درو سره
اې دافغا نا نو دعزت او دغیرت زویه
اې ستره انسانه دبشر دکرامت زویه

مړه دې دي هغوی چې تې وهلی ځورولی وې
ته یې یه قفس کې اچولی ، ربړولی وې
ته یې په ګناه دعقیدې باندې شړلی وې
ته یې په حسرت کې خپل مرام ته ژړولی وې
ته یې په اورونو او سکروټو اړولی وې
تې داستبداد داړه مارانو ته تژړلی وې
ته یې قاتلانو او لیوانو ته سپارلی وې
ته یې برباد کړی، محو کړی ، اولوټلی وې

ته دې تل ژوندی يې ربز مربز دې ښنځي رونه کړل
پرې دې زولنې کړې ، دړي وړې دې بندونه کړل

دامې ستر ارمان دی چې زه هې□ در ته کوی نشـــم
ډېر دي پړاوونه تا ته ځان در رسوی نشـــــم
غرونه ، دريابونه ، آسمانونه ژړوی نشـــــم
ستا د دښمنانو برجلونه نړوی نشـــــــم
سوځي مې هله وکې ستا دردونه هېروی نشـــم
ستا غمو مې ملا را ماته کړې ترې وتی نشـــــم
جوړ به در ته قصر د شعرو کم ابدي بـــــه شي
لوی به شي ، ژوندی به شي، سمبول د آزادي به شي

کابل

نوی آهن□

غوږو کې مې شرنګېږي بيا نغمه دنوي چن□
ته ګوره دا به څه وي ؟
يا مينه لېونۍ شوه
يا کتنه ځنډنۍ شوه
را غلي مې په زړه کې ارمانونه په غورځن□

رګو کې خوځېږي دجانان دحسن څرېکې
زما په وينو ليکې
پيغام دنوي ژوند
زه اخلمه ترې خوند
وږمه ديار دځنو خوځوي زما پالن□

بيګا په مدرسه کې ملا وتاړه کتاب
را واېې خيست رباب
په بزم باندې سم شو
له رند سره محرم شو
زاړه يار په سر وړول دنوې مينې بن□

رټلي اوسېلي مې اوس ديار په مخ لګېږي
صورت مې ټول رپېږي
څرخېږم له مستۍ
لاهو مې کړه بېړۍ

پښتون

زه يو آواره، يو سرگردان او يو پښتون يمه
زه دژوندانه دوير شپېلۍ دغمو يون يمه

يو ځلي سکندر زما هيواد تر پښو لاندې که
بل واري عربو بې کلتوره بې دطنه کړم
وروسته بيا چنگېز په ما دظلم لمبې بلې کړې
بل ځلي تيمور بې هديرې او بې کفنه کړم
زه هر جهانگير او هر وحشي يو ځل لپلی يم
زه هر بې وطنه خپل وطن کې ځورولی يم

څو ځله نيولی با چهانو هندوستان په ما
زه دهر جابر دهوس لار کې وژل شوی يم
څو واره له ډال او له خنجر او کمر بند سره
يا را نيول شوی يا په نورو پلورل شوی يم
ما چې چا ته تاج او سلطنت او واک ورکړی دی
زه بيا دهغه په لاس بندي يا شړل شوی يم
زما په ځيگر ينښي زمانې لک يرهرونه دي
زما له خولې وتلي مليونونه فريادونه دي

زما په مټ عربو ملتونه لاندې کړيدي
زما په زور با بر پراخ ملکونه رانيولي دي
زما په يون محمود دسومنات بتکده ماته کړه

زما په تېغ څوک مړه ، څوک سلطنت ته رسېدلي دي
ما ته مګر توري لوړه ، تنده ، بدبختي راوړه
ډېر ځله مې يوې ګولې ډوډۍ پسې ژړلي دي
څوک چې فتح شوی زه يې وره کې درولی يم
دا زما تقدير دی زه تل وړی ګرزېدلی يم

نه نه زه غلط شومه ما څوک لاندې کوی نشي
ما دچا قوت برباد وی او ځملوی نشي
ما په غلا مۍ کې له دې وروسته څوک ساتی نشي
ما له خپلې لارې اړوی او ګرزوی نشي
ما څوک په ګوليو او اورونو ماتوی نشي
اوس ستر ملتونه څوک خوړی او هضموی نشي
ما څوک خښوی، محو کوی ، او ورکوی نشي
زه اوس د پېړيو له خوبونو را ويښېږمه
لېږه دمه را که آزادۍ چې در رسېږمه

نور دچا لپاره ستر ښارونه ورانومه نه
وينې بهومه نه او چا ته څه ګټمه نه
يوه کونډه کومه نه او بل يتيمومه نه
دوست خپه کومه نه، دښمن خوشالومه نه
بيا دچا لپاره خپل بچي حلالومه نه
بې له خپلو خلکو تر چا سر قربانومه نه
ما ته غوږ کې نوي حوادثو څه ويلي دي
ما ددې استاد درسونه ټول په زړه منلي دي

زړه خو هغه زړه وي چې جذبه دآزادۍ لري
سر خو هغه سر وي چې هوا دسربازۍ لري
متې هغه متې چې توفيق دآبادۍ لري
زه هغه ملت يم چې ننګونه او مردۍ لري
تندر او توفان لري ، برېښنا او ترږمۍ لري
لاره دنجات لري ، ما ته لري بېړۍ لري
زه دتوفانونو په زانګوکې روزل شوی يم
زه دزمانې سختو څپېړو ازمويـــلی يـــــم

يو شئ سره يو شئ اې غريبو پښتنو ورونو
اې زما پښو لوڅو اوښبنو او غوبنو ورونو
اې زما بدمرغو، دربدرو ، لېونو ورونـــو
اې زما دپرون دبې وسيو دا سرو ورونو
اې زما دهيواد دسبا وون دعظمتو ورونو
اې دانقلاب دغورځنګونو دڅپو ورونو
پاتي مو لا مخې ته درانه درانه مزلونه دي
غرونه دي، کوهي دي، بې حسابه ګړنګونه دي

کابل ۹ر٦ر۱۳۴۵

د بخت لوبه

دپښتون ماڼۍ په شخړو کې کيږدۍ شوې
د پنجاب تورې کيږدۍ سپينې ماڼۍ شوې
زه دې تورو تقديرونو ته حيران يـــــــم
چې زموږ په لاس کې تورې ا تکړۍ شوې

دا پښتون

خدايه څنګه دې ذ ليل که دا پښتـــــون
د تاريخ دافسانو غـــــښتـــــــــلی يون
چې په تشو لا سو ځغا ست دتورو جن□ ته
تر ينه تللی هغــــه بـــــرم د پـــــرون

د وطن ښه

نن مې په کوګل کې تازه شوي مړه اورونه دي
سر يې رانه وړی ياغي شوي ارمانونه دي
سم په استثمار د کارګرانو ګوزارونه دي
منلې، تکل دی، له دښمن سره جنګونه دي
سره را ته ښکاريږي په بهار کې دچمن ښه
سره بيرغ ته ورته ده زموږه دوطن ښــــــه
مست به شي بهار اوراروان به سيلاوونه شي
ويښ به په درو کې دغضب ويده بادونه شي
وريځې به خورې شي او آزاد به تندرونه شي

جوړ به له خاټولو دبز گر دسر گلـــــــو نه شي
دا وطن به خلاص شي له ظالمه گلستان به شي
خود به گلستان شي د کار گر او ددهقان به شي

اې گرانه وطنه ستا نه جار زموږ سرونه شه
مړه دې دښمنان شه او قوي دې سنگرونه شه
لاس دزيا رايستونو نه دې لري دا بندونه شه
ج□ دې د کار گرو نړيوالو مه سرونه شـــــه
ته ښکلی وطن شې د کا ر گرو د بـــــري وطن
ته انقلابي شې د بخدي او د هري وطـن

جار دې شم وطنه له دې مستو شا زلمو سره
بيا د قرباني شم د کار گر له نهضــــــــــتو سره

زه سپيلنی کېږم ستا له تورې او ننگـــو سره
مرمه په هوس دزيار ايستونکو له جنگو سره
نشته بله لاره بې له جنگه له دښمن ســـــره
نشته وفا نشته بې له دې نه له وطن ســـــره

کابل ۱ر۵ر۱۹۷۱

د سر قر باني

سم به نشي ثو يې ما ت نشي هله و نـــه

دا ظلمونه، دا فتنې، دا گوزارونـــــــه
دا تېيټ شوی سر به جـ□ نشي دخلکو
څو ور نکړي قربانۍ کې خیل سرونـه

......

د مردۍ ننبه

دمر دا نو دمردۍ ننبه به څـــــــــه وي
چې په خوله کې پرته قيضه دخـــــــره وي
په ذ لت کې دمردا نو ژوند پېـــــغور دی
چې له خلکو نه قربان شي څومره ښه وي

........

د زيا ر ایستو نکو لښکر

نوی زما ن راغی ما توي زاړه بتا ن
نشته دی اما ن
نشته دی اما ن

پا څېږئ زمنو درنځونو ، دغمونـــــــــــو
پا څوئ با زا ن دځپل هيوا د له لوړو غرونو
ننه با سئ اور د سړې ځمکې په رگو نـــــو
دا وطن را ویښ کړئ دپېړيو له خوبونـــــو

دی به شي سرلوړی دسیالیو دجهـــــان
خلک به ودان
خلک به ودان

موږه یو لښکر دزیار ایستونکو دپیغام
گوا کې دوروری، برابری او دســلام
موږه عدالت غواړو په ځمکه کې تمام
موږه سرغندوی یو دکارگرو دنظـــام
هغسې نظام چې هستوي نوی انسـان
وړ ددې دوران
وړ ددې دوران

موږه هم وطن لرو ، هم سیمه، هم جهـــــان
دغو کې مېشته دي زیار ایستونکې کارگران
موږ په هر قدم کې یو له دوی ســـــره روان
داده زموږ لاره، زموږلوری، زموږ شـــــان

حکم دزمان
حکم دزمان

کابل ۲۲ر۷ر۱۳۵۱

## پسرلی راروان دی

گورئ پسرلي ته راروان دی له مستۍ سره
راغی درنگونو اوعطرونو له هستۍ سره
ځغلي پر کمرونو دګلانو له ځولۍ سره
لو بي له وريځو، اوآسمان ، اوله نړۍ سره
جګې له نسيمه دژوندون نوې سندرې شوې
تويې له بارانه الماسونه مرغلرې شوې

وربځو مر مري تا جونه کېښوده په غرونو کې
شنې زرغونې پلنه خپل لمن کړه په رغونو کې
زانګې امېلونه شوې د وريځو ګرېوانونو کې
ويښې ترانې شوې د سيندونو په رګونو کې
ج□ يې دشپنو له شپېلۍ نوي فريادونه کړل
ويښ يې دبزګر په زړه کې نوي ارمانونه کړل

ستر ګو دآسمان کې غلي غلي ګردشونه دي
غېږ.ي دوريځ کې لا پراته سل تندرونه دي
نن سبا له خاورو راوتونکې سره ګلونه دي
سم له يسرلي سره دنوي ژوند فکرونه دي
جار دې شم وطنه له دې نويو شا زلمو سره
ته دې تل ژوندی يې له دې ګڼو ولسو سره

کابل ۲۲ر۲ر۱۳۴۴

## دشهید اتل په یاد

راماتې بیا په غرونو دوریځو قافلې دي
خورې په سپینو وربځو کې دلمر ژېړې شغلې دي
په شنه آسمان کې رغړي په مالوچو کې لمبې دي
په ځمکه او آسمان کې درنګونو هنګامې دي
چې ته يې لېونی وې هغه ورځې هغه شپې دي
خوزه يې ستا په وير کې په ژړا وو تېر ومه

سازونه دسیندونو دغم ساندې دي خپرېږي
باران دغمو او ښکې دي په ژوند باندې اورېږي
برېښنا دغضب توره ده خوارانو ته ځلېږي
رنګیني ترانې چې زماله زړه نه راجګېږي
سازونه د دردونو دي له ما سره ژړېږي
هر دم چې تا د ستر ګو په لېمو کې ګرزومه

ته لاړې زه دې پرېښووم اوږدو اوږدو غموته
دسوړ ژوندون بې خونده او بې رنګه ورځو شپو ته
غمجنو، دردېدلو، ناکراره اند ېښنو ته
داغونو ته، آفاتو، اوسېلیو، او رنځو ته
بې درده حوادثو ته، توفان ته، غرقېدو ته
یوا ځي به دالاره وایه څنګه یرې کومه

دزړه په وینو نیال شوې ما وې رابه وړې ګلونه
خواره به کړې په باغ کې د ځوانۍ ښکلي رنګونه
بیا ستر به شې، اوچت به شې، خپاره به کړې ښا خونه
ترسیورې به دې پټ شي لمر وهلي خوندې ورونه
خو وای چې بې تعبیره شول زما خوا ږه خوبونه
برباد شوې زما هیلې، جوړ به نشم له دې غمه

چې سور کم ستا په ویر کې د ماتم سوي سازونه
سپاره کمه په ګوتو د غمونو شهبازونه
را رسي مې غوږو ته ستا له خاورو آوازونه
«ملګریه مخ په وړاندې، ګړندي کړه ګدازونه
در وا خله زما له خاورو غلي شوي پروازونه
زه خاورو کې هم هغه سپاهي یمه چې ومه»

هر پل چې زه په مینه د وطن کې جګومه
هر شعر او ترانه چې خپلو خلکو ته لیکمه
هر شور د آزادۍ چې په اولس کې خپرومه
هر بند او زولنه چې له لاسونو ماتومه
یا ستړی شم له جنګه چېرې دمه جوړومه
ده خیال کې رن سره یې په هر دم دې یادومه

کابل ۱۱ر۲ر۱۳۵۷

پا ځېږه وطنه

را ووړ انقلاب خلکو ته زېری د بـــــــري
ختمه شوه وطن کې تل لپاره بربـــــــري
رپي په آسمان کې سور بیرغ دجمهوري
ودرېږه، په پښو شه، درنه جار شه زر ختنه
پاځېږه وطنه
پا ځېږه وطنه

را غله ستا درشل ته دتاریخ انقلابونــــــــه
بند په بند متېږي ستا دمټو ځنځیرونــــــــه
نیسي انقلاب لا نوي نوي سنگرونـــــــــه
ستا په پا که خاوره دبریو رڼا پلنـــــــــه
پا ځېږه وطنه
پا ځېږه وطنه

ته که اوس پا نه ځې بیا به چېرې پا ځېدی نـشې
چېرې که را پا ځې بیا به ځای ته رسېدی نشې
دې توري تیارې نه بیا دبا ندې راوتی نـــشې
زه دې قرباني شم راوچت شه زماتنــــــه
پا ځېږه وطنه
پا ځېږه وطنه

ډېره دې اوږده شوه زمانـــه دوید ېد و

سر دې را اوچت کړه د کلو نو له خــــوبو
خوب چه ډېر ژور شي ترېنه جوړه شي مرګو
زړه مې ويلي شوی اوس تو ييږي زما ينــــه
پا څېږه وطنه
پا څېږه وطنه

پا څه چې آزاد شي ورمېږونه له سجــد و
ولوېږي لښتي دغلامانو له غــــــورو
لري شي سپکيا دلعنتو نو له ســـــړو
پلنه که په لو څو ددې غرو باندې لمنـــه
پا څېږه وطنه
پا څېږه وطنه

سوله، آزادي، او عدالت زموږ شعار
کار او آبادي او پر مختګ زموږ لار
ستا را الټېده زموږ دنسل افتخار
مخ ته دې راغلې اوس پر يکړو نې ا زموينه
پا څېږه وطنه
پا څېږه وطنه

کابل ۲۷ر۴ر۱۳۵۲

اې دنوي عصر با د ه

اې د نوي عصر با ده، را چلېږه را چلېـــږه
اې دڅو ند ځلانده لمر ه، را ځلېږه را ځلېږه

په دې و چو شا ړو ځمکو
را او چت تازه لا ن کــه
له دې لو څو و چو غرو نـو
را او چت ويده با زا ن که
ګرندی شه او چټېـــــــږه
اې دنوي عصر با ده، را چلېږه را چلېـــــږه
اې دڅو ند ځلانده لمره، را ځلېږه راځلېږه

ددې خا ورې هره لو ښتــــــــه
هم فردوس دی، هم جنت دی
هر يو بو ځی، هره تيــــــــــږه
همدولت دی، هم قـــو ت دی
خوب دې بسدی، را لتهېـــــږه
اې دنوي عصر باده ، را چلېږه راچلېـــــږه
اې دڅو ندځلانده لمره، راځلېږه را ځلېږه

اې پښتونه ، اې ازبکه
اې دغرو هزاره ګا نـــو
د افغا ن لويه ټبــــــــره

له ترکمنه تر تاجکـــــه
در واري شمه یو کېږه
اې دنوي عصر باده، را چلېږه را چلېـــــږه
اې دژوند ځلانده لمره ، را ځلېږه راځلېږه

دخوښۍ سندرې سر کړئ
کارګرانو، بزګرا نـــــــو
سره یو شئ سره یـــــوشئ
دبدلون پیغمبرا نــــــــو
که مې وروریې رارسېـــږه
اې دنوي عصر بادهرا چلېږه راچلېـــــږه
اې دژوند ځلانده لمره، را ځلېږه راځلېږه

کابل ۲۰ر۵ر۱۳۴۳

رښتینې مینه

مینه څه ده؟ تر وطنه جا ریـــــــــــد ل دي
په سرونو داورونو چلـــــــــــــول دي
سل کرته په دې لار کې پرېوتـــــــــل دي
پر مختا□ دی، خوځېدل دي، رسېدل دي

داوطن

داوطن، وداڼ وطن
دادلوی افغان وطن
داپه موږه ګران وطن
خاوره دغیرت ده زلزلې لري توفان لري
غرونو کې بازان لري

شور یې په سیندونو کې
تاو په لویو غرونـــو کې
مینه یې په زړونـــــو کې
خېژي له سینې دهر افغانه ولولې لري
بلندې لمبې لـــــري

اوسي افغانان پکـې
نسل قهرمان پـــکې
واړه سرباز ان پکې
څاري یې دغرو اوچت سرونه له آسمان سره
نن□ او له ایمان ســـــــــره

بادلري ، برېښنا لــري
شور لري ، غوغا لري
ژوندلري، بقا لــري
هره لوېشته خاوره يې کعبه ده افغانا نو ته
دي نويو ځوانانو تـــــــه

۲۶ر۵ر۱۳۴۳

# د شهباز سرود

## دماکسیم گورکي اثر

---

گورکي ددې حماسې د هستولو لپاره له یوه فلکلوري روایت څخه کار اخیستی او دغه مسجع رزمي تلپاتې نثر یې دهغه وخت دروسیې انقلابي نسل ته وړاندې کړ . ما دپښتو شعر دزرمي خصلت او حماسي کرکتر د آسانتیا وو او تصویري غنا په مرسته په شپږ کرښیز حماسي نظم وژباړه او دهغه له صحت او رسندویې څخه راضي یم .

څه چې ما دشعر دبڼې او منځپانګې د سلامتیا درعایت لپاره د گورکي پر متن زیات کړي دي په لیندیو کې مې نیولي تر څو داصلي متن او ترجمې ترمنځ□ د تطبیق او مقایسې په مهال ستونځه رامنځ ته نشي.

---

د بدبویي او نمجنې درې خوا کې
و یده شوي و یو مار دلمر شغلو ته
هلته کته څپې ځغاستې پر کمرونو
پاس له غرونو خوږ راوتی و بېلوته
تر ځگونو لاندې پټ په منڼو منڼو
تویېده په شور دبحر شنو څپوته

پاس په لوړ آ سمان کې لمر په ځلېدو و
غرنو ګرم او سېلي لېږل فضا ته
د درې په تاو راتاو کې دخوړ چيغو
غږاوه دغوسې ساز دبحر خوا ته
سر کش خوړ په شور او زور کې رغړولې
په بستر کې لويې تيږې منتها ته

دزورې درې خوا ته له آ سما نه
را ګوزار شو په ډېرو يو شهباز
ښی وزر يې مات ، په مخيې خورې وينې
لکه ولګي په جنګ□ کې هوا باز
کته، ډېر کته، دشنې درې له منځه
رسېد ه را دځګن را د ه آواز

قهرجن ځپانده سين دغرو له منځه
ننو تی په کو ګل د سمند ر و
هره پوله د ځپو به چې را تلله
د سا حل له لوړو غرو سره يې سر و
زخمي باز لکه سپايي ورو سته له ماتي
غوړولی پر کمرونو خپل وزر و

لکه او سپنه چه سره شي، تودو پر ښو
پښې و سوې دمات شوي زلمي باز
په وزرو کې يې دغچ لمبه پيدا شوه

له غوسې نه يې اوچت که يو آواز
چې کاته يې دقوت مخه يې نشي
ده وزرو کې پې مات شوی دی پرواز

د فضا زوی چې نا مېند له الوتو شو
په حسرت يې يو ځل وکتل آسمان ته
زړه يې ډېر غوښتل چې يو ځلې بيا ج□ شي
ځان غور ځار کړي نا پا يا و نيلي جهان ته
مگر دا يوا ځې هيله وه، يوه هيله
يوه اسره دتوانېدو يوه ناتوان ته

وزر تاتی باز چې وخوځېد په تيږو
مار له وېرې نه رالري شو کنار شو
مگر پوه شو ژر چې عمر يې ډېر لنډ دی
ور نيږدې شو، ورته ودرېد، په وينا شو
څه در شوي؟ نه چې مرې بېچاره باز ه؟
هو! زه مرمه، راته ښکارې دا مې وارشو

ما په وياړ او آزادۍ کې ژوندون تېر که
له دښمن سره بېبا که جنګېد مه
بخت مې وليد له آسمان سره آشنا شوم
ته ليدای نشې هغه تر وروستي دمه
اې دخاورو بنديوانه، اې غريبه!
اې بد مرغه اې محرومه له عالمه!

آسمان څه دی؟ خالي خونه، تش ماحول
دا ځای ګرم دی، نمجن دی، زه او سېږم
مار دا وویل شهباز ته خو په زړه کې
په خندا شو او ډاډه شو چې پوهېږم :
ښویېدن په ځمکه څه ، الوتل څه دي
عاقبت را ته معلوم دی نه غولېږم

عاقبت به واړه شي دخاورو خاوره
دغه واړه به په ځمکه کې ویدېږي
زړور شهباز نا څاپه ټان وخوړ
ولاړېږي شا او خوا یې نظر لوېږي
هلته ګورې چې دتور تنګي د ننه
له یوه کاڼي نه څڅوبې را بهېږي

هوا د په وه، بد بویه ، زهر جنه
شهباز چیغې کړې په ټول قوت له درده
کاشکې والوزم یو ځلي بیا آسمان ته
کسات وا خلم دخپل زخم له نامرده
خصم کېکاږم دخپل ټټر په وینو
مادر جار کړې اې لذ ته د نبرده

مار په فکر کې ډوب لاړ ویل یې ښایي
دآسمان ژوند به تر ځمکې ښایسته وي
ور نیږدې شو آزاد باز تې هسې ووې

که دې زړه چېرې پرواز پورې بسته وي
د ژورې درې څنډې ته نیږدې شه
ښايي وي چې په وزرو کې دې څه شته وي

ځان غورځار که چې آزاد دې شي وزرونه
تا کړي پورته یو ځل بیا نیلي آسمان ته
یوه شېبه په خپل عالم کې ژوندون وکړې
تا اوچت کړي دخیالونو خپل جهان ته
په لړزه شو باز مغرور آوازیې ویوست
په نمجنو تیږو وښويېده پاڼ ته

د پاڼ خوا ته یې وزرونه سره خلاص کړل
یوه ژوره سایې را ښکوده سینې ته
سترګې وځلېدې، ځان یې را ګوزار که
لکه تیږه رغړېده ښکته درې ته
ښې وشکېدې ، وزرې یې شوې ماتې
لاندي ولودوېد دسېلاب خونړۍ خولې ته

سین یې پرې میځلې ویني بیا یې یو وړ
د ځګونو په کفن کې سمنــــــــدر ته
د دریاب څپو دغم په انګـــــازو کې
غبرولي دغم ساندې لرو برتـــــــه
د اوبو برجونه اوښت یو پر بلـــــــه
د شهباز نښه رانغله بیا نظـــــــر ته

مار په پروتې په اوږده فکر کې ډوب شو
دشهباز په مرګ، په مینه دآسمـــــان
بیا یې هسک نیلي ته واړولې ستــرګې
(چې همېش په کې نظر وي سرګردان)
آخر څه لیدل دې مړه شهباز په دې کې
ددې بې پوښه فضا په بېکــــــران ؟

هم جنسان دده په څه وروسته له مـــــرګه
غولوي روح وآسمان ن ته په پــــــرواز
څه شی ګورې دوی هلې، ماهم کوی شوی
چې ځان پوه کمه ددې مینې پـــــــه راز
کم اوډېر آسمان ته زه هم الوتی شــــــم
دایې ووې یوڅه والـــــووت(لکه باز)

ځان یې تاو که بیا ګوزار شو پاس هواته
دپېټارې غوندې وځلېد په لمــــــر کې
خزنده کله پیدادی الوتــــــــه
لا پخوایې دغه فکر نه و ســــــر کې
ښکته ولوېده په تېږو خو مړ نه شــــــو
په خندا شو له خپل ځان سره کمــر کې

وې : آسمان ته دپروا ز جذبه دغــه ده ؟
خندنیو الوتونکو، په لوېــــــد وکې !
خاورې نه ده پېژندلې پکې تن□ دي
لوړ آسمان ته هڅه کړي په الوتــــوکې
په سره دښته دآسمانکې ژوندون غواړي
خالي ځاي دی بس رڼا په خورېدو کې

لیکن هلته دخوړلو غذا نشتــــــه
نه ژوندي تن ته تاټوبی دتــــــکیې
نو دا کبر څه ، رټل دڅه لپـــــاره
پټوي پې د وحشي هوس لــــــمبې
چې خپل عجز دژوندون په کار کې پټ کړي
خندني مرغان لري هسي اســــرې

نورنو زه ورته وښیاریم... نه غولېـــږم
زه خبریم... مالیدلی دی آسمـــان...
هلته والوتم، ور ج□ شومه په خپلـــه
را لوېده مې هم ده ځان کړل امتحـــان
مګر مات نشوم (ژوندی ترېنه بهر شــوم)
لا مې ټین□ شو پخپل ځان باندې ایمـــان

په هغو چې دغه خاوره ګرانه نــه ده
پرېږده و کړي له موهوم سره ژونـــدون
ما پيدا که حقيقت ، زړه بـه کې نږدم
هېڅ هېڅکله د مرغانو په لمســـــون
زه له خاورو نه پيدا ، په خاورو پايم
مار چکۍ شو په يوه تېره په ويــــاړون

ځلېده د نور څپو لا نـــــدې درياب
موج ټکرې لګولې له ســـــا حله
دڅپو په هيبتنا که غورېـــــدو کې
دزړور مارغه ستاينه غږېـــــدله
دڅپو له ګوزارونو لړزېـــــد لې
دساحل ځوړندي تېږي تر کوګله

رېږدېده آسمان د تالنـدې لـه زوره
غږاوه يې دجنګي مارغــــه ســـرود
د زړورو لېونتوب او جنون ستـــايـو
د زړورو لېونتوب د ژونـــــدون دود
اې زړور شهبازه وينې دې شوې تويې
مګر را به شي يوه ورځ چې دغه رود...

...دا د ستا دګرمو وينو رود يا غي شي
او روښا نه تياره لار شي د ژونـــدون
او په ډېرو زړورو زړو کې ويښ کړي

درنا او آزادۍ دميني يـــــــو ن
(سر چې كته حا دثې ته شي سر نه دی)
(مقدس غرور به تل لري جنـــو ن )

ته خو مړ شوې مگر يا د دې ابدي شـــو
د زړورو په ستاينو ســــــــــرودو كې
لكه يون د آزادۍ او نور پر لـــــــــورې
يا ژوندی مثال( په چاره دننگـــــــو كې)
د زړورو لېونتوب او جنون ستا يـــــــو !
(يا د گارونه دې ژوندي وي تل په زړو كې)

كا بل ............
د هسك پر پلاز

كه عا شق د آسما نويې هوا با ز شـــــــه
له خوب وړې خا ورې پورته شه پروا ز شه
د تپوس په تقليد مه كېنه په مـــــــــړ ز گه
په آسما ن دې پلاز وتړه شهباز شـــــه

شهبا زي كو څرې
سسته مځكه دمر چې دباور نـــــــه د ه
ځاله مه ږده دمېړانو، په تلكــــــــــــه
كه در كېږي د همت وزر آزاد كـــــه
څوك ختا ی شي بې كو څرو تر فلكـه

اې د شپې لا رو يو

توره شپه روانه ده اورېږي بارا نونه
تا لنده غورېږي، برېښنا کا ندي غاښ چيچونه
سوړ باد لکه وږی لېوه،
ورېځې لکه ترهند ه رمه ځغلي په غرونه.
باد په زړو دړو غږوي دچيغو ډول،
ونو لېونۍ نڅا سر کړې ده، څرخېږي.
ښکاري دبرېښنا پړقو ته :
بوټي لکه ستړي چرګان،
ښکته پورته اچوي وزرونه او ستمېږي.
کوکې د سېلاو، تيا ره دمرګ دورېځو ،
شور د باد، شرنګی او شرهار د بارا نونو،
ګړز او ګړوز دوچو څانګو،
سام دغرونو،
ازمويې زغما دپولا دي او زړورو زړونو.

اې زموږ پر سر باندې چاپېره توره هسکه !
څومره چې پر تا باندې پوره وي هومره وس که
وچرموړه غرونه توفاني يې که،
ولمسوه ورېځې ارماني يې که ،
زما وطن دپېښنو قهرمان دی ، قهرمان ښه دی
زتا ځاله ټاټوبی دتوفان دی، دتوفان ښه دی .

اې دشپې لارويو ! تاسي اورئ دغه چيغي،
دادتوفان کريغي ؟
ولې ورته گورئ په سره سينه چې يوسي
دا بې ژبې پسونه په تياره کې سيلاوونه،
پريوزي په رمه دقهر او کرکې لعنتونه ؟

کابل ۱۵ر۴ر ۱۳۵۲

تاريخ

څه دی ؟ تاريخ څه دی ؟
يو بهانده ننداردتون دی !
کله توره شپه ، کله روښانه سباوون دی
کله په پرون کې دسبا مخکينی يون دی
کله دسبا په شونډو ټاپې دپرون دی
کله دفرهاد په زړه کې ټپ دبيستون دی
کله دليلا په انځور سيوری دمجنون دی
کله په يوه څاڅکي کې دننه يو بدلون دی
کله په نړۍ را چاپېر شوی شوا خون دی
بې له کوم ابهامه دمهال جبري قانون دی
گوا کې په زمان کې دانسان حتمي بدلون دی

کابل گذرگاه ۲ر۸ر۱۳۴۰

د پښتو ژبې او ادب پیاوړي پالونکي محمد دین ژواک د هجري شمسي ۱۳۵۴
کال په ژمي کې سلیمان لایق ته دلاندي استول شوي شعر پر سر باندې ولیکل:
«دا شعر دافغان اولس انقلابي شاعر رفیق لایق ته ویل شوی دی.
ژواک
۲۰ر۱۱ر۱۳۵۴»

شاعره !

شاعره خوله دې جار شم، دژبې اور که خــور
نغری سوړ شوی گوره، دمینې شور که نـــور
هله دې مړو زړونو کې، دعشق سر کشه لمبه
بله کړه، بله یې کړه !دا په تا پوردی پـــــور

ستا تر گرمي واري شم، دغه گرمي خوره که
ستا دسینې په تل کې، یوه نړۍ اور ستـــه اور
ته دمستیو دریاب ، دتوفانونو زانگــــــو
ستا په ژور نظر کې ، دهیلو کورشته کـــور

نهیلې هیلې ته لار ، دویشېدو وښیـــــــــــه
دې ماتو خولو ته هنر ، دغږېدو وښیـــــــــه
ډېوه دمینې شوه مړه،په کور تیاره خوره شوه
سپرغو دمینې ته چم، دخوړېدو وښیـــــــه

تا به په زغرده ویل:« ژوند کې گداز دې وي
ولس لره لاره دې وي،انجام آغــــاز دې وي
نن□ او غیرت دې وي، یا د گار دتورو دې وي
ژوندي ملت لره ، دغه اعجــــاز دې وي »

ستا سره خواله ضرور ،ستا سره چــــاره شته
ته خو نظر نظر یې، مله خو دې یاره شــــــته
د ولس باور دې مل دی، دځوان ویسا په تـــا
ستا دمغزو په ولو کې ، هدف ته لاره شتــــه

ستا تر قلم لو گی شه ، دا دهنر تاجـــــــران
ستا تر نظر قرباني،دا سوداگر شاعـــــران
ته په پېچلیو لارو، دشو گیرونو ویانــــــد
تا نه رڼا اخلي ،دتیــــــارو لارو روان

دجار قلم را اخله ، مینه توده کړه تــــوده
رگونه سست ښکاري، هڅه سړه ده سړه
دغه دمینې کور گی، درنه بې مینې نشـــي
دمړو رگو په تل کې، تونده لمبه شه لمبه

## ژواک صاحب ته ځوابي شعر

---

### گوره شاعره

گوره شاعره، تا ستا یلی یمه
زه دستایلو نه یم
دیا دولو نه یم .

زه یو اسیر یم، اسیر
د تدبیرونو اسیر
دځنځیرونو اسیر،
زوړ بندیوان په نوې بڼه غاښ چیچونه کوي
مور ته گواښونه کوي
په تیاره شپه کې په لارویو یرغلونه کوي
زه ورته گورم .
زه ورته گورم، رڼې سترگې مې سیلونه کوي
لاس مې تړلي،
خوله مې بنده،
یو بې دمې شاعر،
یو دزړو منسوخو شویو قدرتونو اسیر
دځنځیرونو اسیر
او دخپلو ملونو اسیر.

ما دلایق یه نوم کې ،
ددې سر کشې نامنونکې ککرۍ لپاره،
دټول جهان له رنګنیو څو ګلونه جوړ کړه،
په دې ګلونو کې مې خپله خود خواهي ونغښته،
له دې ترکیبه مې یو څو تاوده شعرونه جوړ کړه
په ځان عاشق شوم
دغه ځان ته مې عرشونه جوړ کړه
غلط مین شوم
خپلو پښو ته مې دامونه جوړ کړه،
نوزه لا پخوا یم ښویېدلی
ښویوې مې ولې ؟
داشرموې مې ولې ؟

زه که شاعر یم ، که ساحریم
داورونو نه یم
ما تش کاغذ کې داورونو سنګرونه جوړ کړه،
ما له شعرونو او حرفونونه پوځونه جوړ کړه،
په ترانو کې مې مزدور ته جنتونه جوړ کړه ،
خو لا تراوړ لاندې مرچل ته روان شوی نه یم
ځاځکی یم، ځا ځکی
توفان شوی نه یم !
زه لا دخلکو په ننګو کې قربان شوی نه یم !!!

زه غواړم ټولو ته ځان لوڅ کړم او په خلاصه ژبه
دزيار ايستونکو مخکې
له خپله ځانه سره جن□و کړم،
له ځانه ووزم او په خلکو باندې نن□و کړم ،
بيخي آزاد شم ، آزاد
داسي آزاد شم ، چې په کشلې توره
د کبر جن شعر په عرش باندې غور ځن□و کړم ،
نو ستنوې مې ولې
او زما له ساړه رغلي نه ولي ولي
دزر دشت اور غواړې
رسوا کوې مې ولې
او دا شرموې مې ولې ؟

که زه مضبوط شومه،
تکيه شوم
او جلا نشوم ،
په توفانونو کې لار ورکی او خطا نشوم،
دلوی ارمان لپاره
دسره انسان لپاره
په تيريدونکو سړو شپو کې وار خطا نشوم،
او دزيارايستونکو له سنگره را په شا نشوم
بيا به دپرخي ځاځکی نه يمه توفان به يم
نوی جهان به يم

که توفان نشوم، جهان نشوم
یوه قطره خوبه شم
د اوږده فصل دانسا ن یوه نقطه خو به شم
یوه ا سره خوبه شم
دسختو لارو د کاروان یوه نغمه خوبه شم
دجنگیالیو یوه ناره خو به شم
له خپله ځانه خوبه ووزم ، وارسته خوبه شم ؟
ځکه دي ثا ثکی شم !
ثاثکی دي شم، شم دي
خو ثا ثکی دتوفان دي شم !!
له لوی دریاب سره به یو شم او روان به شم
جز د جهان به شم
دخلکو لار کې به منظور شم او قربا ن به شم
خو لا تر اوسه پورې
زه یو ا سیر یم ، ا سیر
دتدبیرو نو اسیر
د ځنځیرو نو اسیر !!!

کابل ۲۹ر۱۱ ر۱۳۵۴

## د محبوب شاه سنگر ډالۍ شوی شعر

---

اور ژبي شاعر ملګري لايق ته:

زړه ته تر هر چا را نيږدې شاعره
يه دسپېڅلې عقيدې شاعره
زه درته څو دزړه خبرې لرم
سرې، تودې ،خوږې، ترخې شاعره

ته خو شاعر يې دغمونو شاعر
دبېوزلانو د رنځونو شاعر
دزيار ايستونکو د رېږونو شاعر
د کړيکو، چيغو، فريادونو شاعر

ته د هوډونو او ننګونو شاعر
زموږ دشخړو او رزمونو شاعر
ته د تاريخ دترخو ما تو ګواه
ته دبرمونو پرتمونو شاعر

زه او ته دواړه بېد ياني بو تې يو
اغزي پرست يو ، ګلپرست نه يو
موږ له هر څلي نه بت نه جوړوو
موږ بت شکن يو، بت پرست نه يو

ته د بېديا په ساړه زړه کې کرې
د راروان ژوندون تاوده تخمونه
زه هم دې شاړو ته اوبه سيخوم
چې زرغونه شي ستا دلاس ګلونه

آخر به وخوځي ويده بادونه
په بدمستۍ په وطن باندې
آخر به وسپړي بېوزلې غوټۍ
سور لمر به خور شي په چمن باندې

لاره اوږده ده ، کږلېچونه لري
خو ته په منځو کې ستومانه نه يې
پښې دې يووړې د سارا ډبرو
خو ته په مخ ځې پښېمانه نه يې

واوره زما دا پښتني خبره
شاعره ځو به ، خو په مخ به ځو
که په لېمو او په خاپوړو تل□ شي
ځان به منزل ته خامخا رسوو

ته چې لوی غم لرې ، لوی زغم لرې
د لويې لارې تل□ لوی زغم غواړي
تا دا کچني غمونه ، نه غموي
ستا پهلوان زړ ګی، لوی غم غواړي

ته چې دوینو په لړلې لار ځې
له خپل هدف څخه مخ نه تا وه وې
د قربانۍ په وخت کې جګې جګې
دا په تا پوردی ما به نه هېروې !

جلال آباد ۵ر٦ر١٣٥٦

د ادب او سیاست د ډګرخواږه ملګري محبوب شاه سنګرته ځوابي شعر :

---

محبوب سنګر ته

بیا دختیځ دنندارو له لورې،
دلوړو څوکو د سرو شویو کنا رو له لورې،
دجنګیالو له لورې،
زموږ د خلکو له سنګره آوازونه را ځي
سره دریا بونه را ځي.
ما لا پخوا وې: د مړه شوي تنا ره له ایرو
او دپلرو له سرو شویو رغلو،
د یو ې ژوندۍ سپرغۍ له لورې
دعشق د تبې په شا ن،
نویو رغلو ته پیغامونه راځي

او د بلبلو لپاره
نويې بڼې ته د اورونو دريا بونه راځي.

ما لا پخوا وې چې زموږه مور به
نوي زمن وروزي
دوى به د ګلو پر ځاى
د نازولو پر ځاى
لمرو وهلې سپاندې
او دغرو رغونو د وحشي بوټو چمن وروزي.

ما لا پخوا وې چې په تورو شپو به
او دتيا رې په غلو به،
په ورکو لارو، سړو د ښتو،
ويدو شويو غرو به:
روڼ او آزاد او طلايي لمر يرغلونه وکړي،
وطن به ونا ځي تاريخ به يې سيلونه وکړي.

ما لا پخوا وې: دا لوېدلي کسان
دا ګرېوان ځيري، ببر شري، خوړل شوي کسان
دا درنځونو زمن،
د مرضونو زمن،
دا د باجونو، بېګارونو، تاوانونو زمن
دغه دلوږي، سپکاوي او کړاوونو زمن
دا دغمونو زمن.

دا به ژوندي شي ،
دا به وخاندي او ښاد به شي،
دا به راويښ شي، دا به پاڅي او آزاد به شي .

دغرو له شانه طلايي تارونه
په تورو وربځو او په څوکو باندې
دراختونکې لمر شغلې خوروي ،
په تورو تالو، سرو پر ښو باندې
سرې پلوشې خوروي ،
ځکه د تا سي شاعر
د اور د خدای مخې ته
د هر کلي لپاره
اور غور ځوونکې تر انې خوروي !

کابل ۲۰ ر۶ ر۱۳۵۶

## د اکتوبر د انقلاب د شپېتم تلین په هر کلي کې

---

### سپېدو ته

سپېدو ، سپېدو ، سپېدو !
په تیارو غرو کې د رڼا د خورید و سېدو
په وطنپا ل زړه کې درزم او حما سو سپېدو
سپېدو ، سپېدو ، سپېدو !

یه د غمجنې شپې برستنه کې ویدو سپېدو
یه د آسمان توره کاسه کې د شید و سپېدو
یه تورو لړو کې د لمر دخند ېد و سپېدو
د آزادۍ د خورېدو سپېدو
لمنې سرې کړه !...

لمنې سرې کړه، دا تیارې لمنې
دا یخ وژلې، دا بې روحه، دا سړې لمنې
دوحشي غرونو ویدوونکې بې اسرې لمنې
پېړۍ پېړۍ دجگو څوکو سړو سیوروته پرتې لمنې
شاعرو سترګو ته ښکاره کړه دا سپېرې لمنې
چې ستا په وړانګو کې سرې شوې لکه سرې لمنې
اې دانسان دوینېدو سپېدو
سپېدو ، سپېدو ، سپېدو !

ته چې را خېژې دتيارې ښتنان ورک شي، ورک
د رڼايي دښمنان ورک شي ورک،
دا چيروونکې دېوان،
دا دانسان په وينو روږدي لېوان ،
دا دتيارو حاکمان،
دا د نړۍ او سړيتوب او دوطن غليمان ورک شي، ورک
اې دنړۍ د ويښېدو سپېدو
د امېدو دترانو سپېدو
سپېدو، سپېدو، سپېدو !

ته چې رااوړې د آسمان په کنارو سپېدو
يا سړې وربځې تودوې په سرو لمبو سپېدو
يا سينه سروې دباميان په مړو ايرو سپېدو
يا ننه باسي نوې سا په هديرو سپېدو
يا دوطن په غم لړليو سردرو سپېدو
زه درته گورم ...
... زه درته گورم ننداره دې کوم
ستا دراتلو ، د پلنبدو ، دلمربدو سپېدو
د بربدو سپېدو
سپېدو، سپېدو، سپېدو !

شپه که تياره ده وېروونکې نه ده
د اوږدو لارو ـ لارو و ته ځورووونکې نه ده

کړه وړه ده، توفاني ده، خو د لورې ورکوونکې نه ده
یه خا مخا په تیارو غرو د پلنېدو سپېدو
زموږ آسمان ته د سره لمر د راختو سپېدو
سپېدو، سپېدو، سپېدو !

گوره دلمر گلونه، گوره دلمر گلونه
آسمان سره کړي دسحر گلونه،
له ورایه ښکاري چې غوړېږي لر و بر گلونه
د سباوون په سرو وریځو کې دلمر گلونه
د پاڅېدنو، یرغلونو اوظفر گلونه
د ځنځیرو دماتوونکې اکتوبر گلونه
گوره دلمر گلونه،
گوره دلمر گلونه !

هاغه دي وغوړېدل،
هاغه دي وغوړېدل،
ماته یې عطر راځي،
زه یې رنگونه وینم،
اې دگلونو رنگوو سپېدو
داکتوبر دخورېدو سپېدو
سپېدوو سپېدو، سپېدو !

کابل ۱۶ر۸ر۱۳۵٦

دا شعر د افغانستان د خلک دموکراتیک گوند ځورلسم تلین ته چې گوند یا ن یې د وحدت تلین بولي، بخشل سوی دی.

---

زیری

زیری، زیری، زیری چې سینونه سره یو شوو
ځمکه سره یوه شوه، او چت غرونه سره یو شوو
پورته په آسمان کې تندرونه شره یو شوو
ښکته په لښکر کې سنگرونه سره یو شوو
متې او منگولې او لاسونه سره یو شوو
زړونه، دماغونه، ځگرونه سره یو شوو
هیلې، امیدونه او عشقونه سره یو شوو
فتحې سره یو شوې، شکستونه سره یو شوو
وخاندئ ملگرو
وخاندئ ملگرو

ځکه سره یو شوو، ارمانونه سره یو دي
زموږه باورونه، ایمانونه سره یو دي
لاره سره یوه ده، منزلونه سره یو دي
تورې او ننگونه، غیرتونه سره یو دي
تالندې، برېښناوې، توفانونه سره یو دي
زموږه زولنې او زندانونه سره یو دي
زموږه ځنځیرونه او دارونه سره یو دي

زموږه په مرګونو کې قبرونه سره یو دي
زموږه په بزمونو کې جامونه سره یو دي
پورته کړئ جامونه
پورته کږئ جامونه

راشیه ملګرو چې جامونه سره ج□ کړو
راشئ په مرچه کې آوازونه سره ج□ کړو
خلکو ته ورننوزو لاسونه سره ج□ کړو
وخوځو په غرو کې غیرتونه سره ج□ کړو
لاړ شو کارخانو ته غضبونه سره ج□ کړو
خلک او وطن او هدفونه سره ج□ کړو
کلي او کیږدۍ او کنډرونه سره ج□ کړو
پښې سره مضبوطې کړو، سرونه سره ج□ کړو
جار شو یو تر بله ، بیرغونه سره ج□ کړو
داده زموږ لاره
داده زموږ لاره

پرېږدئ چې د خلکو آوازونه سره یو شي
پرېږدئ چې سرکشه دریابونه سره یو سي
پرېږدئ چې بادونه سېلاوونه سره یو شي
منځې سره یو شي ، یرغلونه سره یو شي
ورېځې او باران او تندرونه سره یو شي
ماتې سره یو شي ، ذلتونه سره یو شي
پرېږدئ چې ننګونه او شرمونه سره یو شي

زموږ دزړو دننه سره اوروونه سره یو شي
دغه ناصور شوي پرهارونه سره یو شي
وینه سره یوه شي ، او رگونه سره یو شي
دادی زموږ عزم
دادی زموږ عزم

داد کړاوونو ، عذابونو ، بېماري وطن
دا ددروېزو ، دمحتا جیو او خواري وطن
دا دبدنامیو، ذلتونو او خدري وطن
دغه د دېوانو او بلاوو او پیري وطن
دغه دمرگونو ، تباهیو او تېري وطن
دا دبدخشان او کندهار او دهري وطن
دا به گلستان شي د کارگرو دبري وطن
دا به ښکلی کور شي د ولسونو د وروري وطن
گوا کې د خلاصون او آزادۍ او سروري وطن
موږ به بریالي شو
موږ به بریالي شو

هر چېرې چې یاستیه ملگرو په ملکونو کې
کلیو ، کروندو کې، په درو یا په ښارونو کې
یاد انقلاب د سرغندوی په سنگرونو کې
یا د استبداد دزندانو په تورو خونو کې
زېری مې در باندې توره یو شوو په ننگونو کې
یو شوو په ننگونو کې او یو شوو په جنگونو کې

لوړ مو شوو سرونه دننگيالو په سرونو کې
وم ځلېده توره د تور زنو په صفونو کې
ج□مو سور بيرغ شو د کارگرو په گوندونو کې
دا زموږ ارمان و
دا زموږ ارمان و

کابل ۱۰ ر ۱۰ ر ۱۳۵۶

د کتاب فهرست

- کله چې رڼا تپه شي ........................
- سیلاني بز گر ..........................
- تا یا دومه ................................
- د یتیم بر خه لیک ........................
- دا دپکتیا غرونه ..........................
- جا پانی نجلۍ ..........................
- دخاوري او خلکو پر لور .....................
- ملګروته ................................
- غر ونړیده ...............................
- نوی آهن□ ..............................
- د پښتانه تقدیر ..........................
- دبخت لوبه ............................
- دا پښتون ..............................
- د وطن ښه ............................
- د سر شیندل ............................
- د مردۍ نښه ..........................
- د زیار ایستونکو لښکر ......................
- پسرلی راروان دی ........................
- دشهید شوي اتل په یادو ....................
- پا څېږه وطنه !..........................
- اې دنوي عصر باده ........................
- رښتیني مینه ..........................
- داوطن...............................
- دشهباز سرود...........................